

د پوهنې وزارت

# حسن خط

## لومړی ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.

# افغانستان

زموږ خانهٔ

د ټولو مشترک

ګډ کور همهٔ ما

دی. است.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




# حسن خط

## لومړی ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** حسن خط

**مؤلفين:** د تعليمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفين

**اډيټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډيټ ديپارتمنت غړي

**ټولګی:** لومړی

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تألیف لوی رياست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړيکو او عامه پوهاوي رياست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهير مطبعه

**برېښناليک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې تېر کال د پوهنې د نوي نامه څخه د ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړليک

# لومړی برخه

لومړی لوست

## د خطاطۍ وسایل

**موخه: د خطاطۍ د وسایلو پېژندنه او له هغو څخه سمه ګټه اخیستل.**



**پوښتنه**

**۱- آیا له دې وسایلو سره مو پخوا بلدتیا درلوده؟**




**لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ، یو بل ته یې وښيئ او نومونه یې واخلئ.**


د کړکې قلم


قلم جوړوونکی


قط وهونکی یا پرې کوونکی


لیقه (د وریښمو یا د ګنډلو تارونه)


مشوانۍ




**زده کوونکي دې د خطاطۍ وسایل، لکه: (د کړکې قلم، مشوانۍ او د خامک ګنډلو تارونه) برابر او ټولګي ته راوړي.**

# ټکی ( نقطه )

موخه: زده کوونکي به د کړکي قلم له سم نیولو سره بلدتیا پیدا کړي.




۱- آیا تاسو ټکی پېژنئ؟







زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کړکي پر قلم د ټکو اېښودل تمرین کړي.




زده کوونکي دې دا ټکي ( ) په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.

# د ( آ ) توری

**موخه**: زده کوونکي به د ( آ ) توري او د (مد) له شکل او ليکلو سره بلد شي.



**پوښتنه**

۱-آيا تاسو غواړئ چې ليک مو ښکلی شي؟







زده کوونکي دې د ( آ ) توری د کرکي په قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې د (ا،آ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل تمرين کړي.

# د ( ب ) توری

موخه: د ( ب ) توري او هغه ته د ورته تورو له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



پوښتنه

۱- ستاسو په نظر د ( ب) او ( ب، ت،ټ، ث ) توري يو له بل سره څه توپير لري؟









زده کوونکي دې سرمشق په غور او دقت وګوري. پورتني توري دې د کړکې په قلم د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې تمرين کړي او يو بل ته دې وښيي.



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ( ب، ت،ټ، ث او پ ) توري پر کړکې قلم او پنسل تمرين کړي.

# د (ج) توری

موخه: د (ج) او هغه ته د ورته تورو له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



## پوښتنه

۱- ستاسو په نظر د (ج) توری څنګه ليکل کيږي؟







زده کوونکي دې د (ج) او هغه ته ورته توري د کتاب د نمونې له مخې د کړکي پر قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې د (ج) توری د کړکي پر قلم يا پنسل تمرين کړي.

# د ( د ) توری

موخه: د ( د ) ، (ذ) او ( ډ ) تورو له لیکلو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

۱- که د ( د ) توري په سر یوَ ټکی کینبودل شي، څنګه لوستل کېږي؟













زده کوونکي دې د (د ) او هغه ته ورته توري د کړکي په قلم د نمونې له مخې تمرین کړي.



کورنی دنده

زده کوونکي دې د (د، ذ او ډ ) توري په کړکي قلم او پنسل تمرین کړي.

# د ( ر ) توری

موخه: د ( ر ) توری او هغه ته د ورته تورو له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



## پوښتنه

۱- ستاسو په نظر د (ر) توری له (ز) او ژ تورو سره څه توپير لري؟









زده کوونکي دې د ( ر ) توری د کتاب د نمونې له مخې د کرکې په قلم تمرين کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (ر، ړ، ز ، ږ او ژ ) توري په پنسل تمرين کړي.

# د ( س ) توری

موخه: د ( س ) او هغه ته د ورته تورو له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



پوښتنه

۱- آيا ويلای شئ چې د ( س )، ( ش ) او (ښ) تورو توپير په څه کې دی؟












زده کوونکي دې د ( س )، ( ش ) او (ښ) توري په غور سره وګوري، غاښونه دې وشميري او د کړکي په قلم دې د کتاب د سرمشق له مخې تمرين کړي.




زده کوونکي دې د ( س )، ( ش ) او (ښ) توري په کړکي قلم او يا پنسل تمرين کړي.

# د ( ص ) توری

موخه: زده کوونکي به د ( ص او ض ) د تورو له ليکلو سره بلد شي.



پوښتنه

-آيا پوهيږي چې د (ص ) توری د قلم په څو حرکتو ليکل کيږي؟












زده کوونکي دې د نمونې له مخې ص او ض توري په پنسل او يا کړکي قلم تمرين کړي.



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (ص او ض) توري په پنسل او يا کړکي قلم تمرين کړي.

# د ( ط ) توری

موخه: زده کوونکي به د (ط) او (ظ) تورو له ليکلو سره بلد شي.




۱-لاندينۍ نمونه وګورئ د (ط) توری په څو رنګو ليکل شوی دی؟









زده کوونکي دې پورتنۍ نمونې ته وګوري، بيا دې په کړکې قلم يا پنسل هغه تمرين کړي.




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (ط) توری په کړکې قلم او پنسل تمرين کړي.

# د ( ع ) توری

موخه: د ( ع او غ ) د تورو له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



پوښتنه

۱- ستاسو په نظر څه وخت کولای شو چې توري ښکلي وليکو؟












زده کوونکي دې نمونې ته وګوري چې د ( ع ) له توري سره بلد شي، وروسته دې هغه د کړکي په قلم تمرين کړي.



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ( ع او غ ) توري په پنسل او د کړکي په قلم تمرين کړي.

# د (ف) توری

موخه: زده کوونکي به د ( ف ) توري له ليکلو سره بلد شي.



پوښتنه

۱- آيا تاسو پوهيږئ چې د (ف) توری په څو حرکتونو ليکل کيږي؟













زده کوونکي دې نمونې ته وګوري، د حرکتونو شمېر دې حساب کړي، وروسته دې هغه په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم تمرين کړي.



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د (ف او ب) توري په پنسل او د کرکي په قلم تمرين کړي.

# د ( ق ) توری

موخه: د ( ق ) د توري له ليکلو سره د زده کونکو بلدتيا.



## پوښتنه

-آیا تاسو ویلای شئ چې له (ف) څخه وروسته کوم توری راځي؟






زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ( ق ) توری په کړکي قلم سره ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ( ق او ف ) توري په کړکي قلم او په پنسل تمرين کړي.

# د ( ک ) توری

موخه: زده کوونکي به د ( ک ) او ( گ ) د تورو له ليکلو سره بلد شي.



پوښتنه

۱- آيا پوهيږئ چې د (ک) توری څه ډول ليکل کيږي؟









زده کوونکي دې د (ک) توری په غور سره وگوري او وروسته دې هغه د کرکي په قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې د (ک او گ) توري په پنسل او د کرکي په قلم تمرين کړي.

# د ( گ ) توری

موخه: زده کوونکي به د (گ) توري له ليکلو سره بلد شي.



پوښتنه

۱- آيا ويلی شئ چې د (گ) توری له کوم توري وروسته راځي او څنګه ليکل کيږي؟









زده کوونکي دې پورتنی نمونه په کږکي قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې د ( گ ) توري په پنسل او د کږکي په قلم تمرين کړي.

# د ( ل ) توری

موخه: د ( ل ) توري له لیکلو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

۱- آیا ویلای شئ چې د (گ) توری له کوم توري وروسته راځي او څه ډول لیکل کیږي؟









زده کوونکي دې د ( ل ) توري ته په غور وګوري او بیا دې په کږکې قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړي.




زده کوونکي دې د (ل) توری په کږکي قلم او پنسل تمرین کړي.

# د ( م ) توری

موخه: د ( م ) توري له ليكلو سره د زده كوونكو بلدتيا.



پوښتنه

۱-آيا ويلای شئ چې د اسلام د ستر پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د نوم

لومړی توری كوم دی؟









زده كوونكي دې نمونې ته وګوري او بيا دې د ( م ) توری د كركې پر قلم تمرين كړي.




زده كوونكي دې په خپلو كتابچو كې د ( م ) توری دكرکې په قلم او پنسل تمرين كړي.

# د ( م ) توری

موخه: د ( م ) توري د بلې بڼې له لیکلو سره د زده کوونکو بلدتیا.




۱- دا ډول ( م ) مو په کوم ځای کې لیدلی و او څه ډول لیکل کېږي؟









زده کوونکي دې د ( م ) توری په غور وګوري او بیا دې په کرکې قلم تمرین کړي.




زده کوونکي دې د ( م ) او ( م ) توري دواړه بڼې په پنسل او د کرکې په قلم تمرین کړي.

# د ( ن ) توری

موخه: د ( ن ) د توري له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



## پوښتنه

۱- آيا تاسو ويلای شئ چې د (ن) توری له کوم توري څخه وروسته راځي؟









زده کوونکي دې پورتنۍ نمونه وګوري او وروسته دې په کړکي قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې د (ن) توری په کړکي قلم او پنسل تمرين کړي.

# د ( و ) توری

موخه: د ( و ) توري له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.




۱- آيا تاسو پوهيږئ چې د( وطن) کلمې لومړی توری کوم دی او څه ډول ليکل کيږي؟











زده کوونکي دې د ( و ) توری د کرکې په قلم تمرين کړي.




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ( و ) توری په کرکي قلم او پنسل تمرين کړي.

# د (ه‍) توری

موخه: د (ه‍) توري له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



## پوښتنه

۱- ستاسو په نظر د (ه او ه‍) توري څه ډول ليکل کېږي؟
















زده کوونکي دې د (ه‍) توري ته په غور وګوري او په کړکي قلم دې تمرين کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د (ه‍) تورى د کړکي په قلم او پنسل تمرين کړي.

# د ( ی ) توری

موخه: د ( ی ) توري له ليکلو سره د زده کوونکو بلدتيا.



پوښتنه

۱-آيا تاسو پوهيږئ چې د ( ی ) توری په څو بڼو ليکل کيږي؟











زده کوونکي دې د ( ی ) توري ته په غور وګوري او بيا دې د کړکي په قلم تمرين کړي.



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ( ی ) توری په کړکي قلم او پنسل تمرين کړي.

# دویمه برخه

## د حسن خط د تدریس لارښود

لومړی لوست

(۱) مخ

لومړی درسي ساعت

(د تدریس وخت دوه درسي ساعتونه)

| د لوست سرلیک | د خط وسایل | |
|---|---|---|
| عمومي موخې | د خطاطي د وسایلو پېژندنه او له هغو څخه دګټې اخیستنې لارې. | |
| د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | له زده کوونکو هیله کېږي چې د دې لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• زده کوونکي به د خطاطي له وسایلو سره بلد شي.<br>• زده کوونکي به د کرکي قلم سم ونیولای شي او هم به له مشوانۍ څخه په رنګ اخیستلو وپوهېږي.<br>• زده کوونکي به د خطاطۍ له وسایلو او له خطاطۍ سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لارې | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه. | |
| د تدریس اړین توکي | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کرکي قلم، تباشیر، مشوانۍ او خط کش. | |
| د ارزولو طریقه | په عملي او مشاهدوي توګه. | |
| لومړني یا مقدماتي فعالیتونه | له سلام او لنډې احوال پوښتنې وروسته، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د نوی کال مبارکي او د خطاطۍ د وسایلو په اړوند خبرې. | وخت ۵دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کولو پوښتنه:**<br>- آیا تاسې د خطاطۍ وسایل پېژنئ او کله مو په کرکي قلم مشق کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| -له زده کوونکي څخه د لوست په اړوند پوښتنې وکړئ،<br>-لوست تشریح او توضیح کړئ،<br>- د کړکي قلم په واسطه د مشق کولو لارې او طریقې وروښیئ،<br>-د لوست فعالیتونه ترسره کړئ،<br>- زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړئ. | ۳۵<br>دقیقه |
| **ارزونه**: د خپل ډاډ د ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي پرلوست پوهیدلي او که نه، د څو پوښتنو په کولو هغوی وارزوئ. | |
| **کورنۍ دنده**: له سرمشق سره سمه نقطه مشق او تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ. | |

## اضافي معلومات

• **د خطاطۍ کاغذ**: له هغه کاغذ څخه عبارت دی چې شفاف او نسبتاً ښوی (لشم) وي او دکړکي قلم پرې په اسانۍ سره وڅغلي او رنګ نشر ونه کړي.

•دکړکي قلم: کله چې دورمې ښې پخې شي، بیاترې د کړکي قلم جوړوو چې ښه جوړ یا سرشي، ترڅو د قلم د لیکلو څوکه ژر خرابه نشي.

د خطاطۍ لپاره داسې کړکی وټاکئ چې اوږدې وي او بندونه ونه لري او یایې بندونه په وروستی برخه کې وي، ځکه چې بندونه د لاس د ازار سبب کېږي.

•**قلم تورونکی**: یوځانګړی چاقودی، تیغه یې یوخه نازکه او د تیغې شا یې نرۍ وي چې قلم په ښه توګه وتورېلی شي.

•**پرې کوونکی**: ډېره کلکه وسیله ده چې له کلك لرګي او یا د ښاروبو له ښکر څخه یې جوړه وي او یا د غر څه له ښکرو څخه جوړېږي چې د قلم د نوکې لاندې ایښودل کېږي او قلم پرې قط کېږي.

دویم لوست

(۲) مخ

لومړی درسي ساعت

(د تدریس وخت دوه درسي ساعتونه)

| د لوست سرلیک | نقطه | |
|---|---|---|
| عمومي موخې | د کرکي په قلم د نقطې(ټکي) ایښودل او د قلم له نیولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | له زده کوونکي هیله کېږي چې د هر لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• زده کوونکي په کرکي قلم سره مشق او تمرین وکړای شي.<br>• زده کوونکي د کرکي قلم نیول سم زده او د کرکي د قلم په واسطه د کاغذ پر مخ ټکی (نقطه) ولیکلای شي.<br>• زده کوونکي د کرکي قلم له مشق او تمرین سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لارې | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه. | |
| د تدریس اړین توکي | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کرکي قلم، تباشیر، مشوانی او خط کش. | |
| د ارزونو لارې | په عملي او مشاهدوي توګه. | |
| لومړني یا مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول،پوښتنه د حاضرۍ اخېستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې لیدنه، له تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره یې اړیکې. | وخت ۵دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځ ته کولو پوښتنه:**<br>-تاسې د خطاطۍ وسایل پېژنئ، کله مو په کرکي قلم مشق او تمرین کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| ۳۵<br>دقیقه | -له زده کوونکو د لوست په اړوند پوښتنې وکړئ،<br>- لوست تشریح کړئ،<br>-زده کوونکو ته په کرکي قلم د مشق او تمرین لارښوونه وکړئ،<br>-زده کوونکي و ارزوئ،<br>-زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړئ. |

**ارزونه**: د خپل داډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهیدلي دي او یانه، د څو پوښتنو په کولو هغوی وارزوئ.

**کورنۍ دنده**: کله مو نقطې(ټکي) په کرکي قلم مشق او تمرین کړي دي؟

## اضافي معلومات

•**لیقه**: د الیافو له جربو، وریښمو او یا د خامک ګنډلو له سُنډو څخه لاسته راځي، خو لومړی باید پر اوبو او صابون پاک پریمنځل شي چې کیمیاوي مواد یې له منځه لاړشي او تر وچیدو وروسته په بوتل کې ځای پر ځای کیږي. لیقه د رنګ د چپه کېدو، د کاغذ پرمخ د قلم د رنګ د زیاتوالي، دلاس ککړیدلو او دجامو د ککړیدو مخنیوی کوي.

•**سیایي**: هغه رنګ دی چې د مشق کولو لپاره ترې ګټه اخېستل کیږي او په بازار کې د کرکي قلم د سیایي په نوم یادیږي. پخوا خلکو سیایي له ترکیبي موادو څخه لاسته رواړه، له همدې کبله د مرکب پر نوم هم یادیږي.

•**مشوانۍ**: هغه بوتل دی چې (سیایي او لیقه) پکې اچول کیږي. باید داسې بوتل و ټاکو چې خوله یې د نورو بوتلونو پر نسبت لویه وي.

•**د کرسي خط**: مستقیم افقي خط دی چې د پنسل او خط کش په واسطه تت او کم رنګه ایستل کیږي چې په استقامت یې خط سم ولیکل شي.

ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې د مشق کتابچه، د کرکي قلم او مشوانۍ له ځان سره ولري. زده کوونکي دې وپوهوي چې د مشق په کتابچو کې تمرین وکړي او په درسي کتاب کې له لیکلو څخه ډډه وکړي، خپل قلمونه دې له مشق کولو وروسته له رنګ څخه پاک کړي.

ښوونکی دې د زده کوونکو قلمونه جوړ کړي او دوی دې پر چاقو باندې د قلم له سرکولو څخه منعه کړي، د چاقو کارول د کوچنیانو لپاره خطر لري.

•زده کوونکي دې وپوهوي چې د مشق کولو مخکې د کتاب سر مشقونه په غور وګوري. څکه چې د دوی سترګې د تورو له ښو سره اشنا شي، وروسته دې د کتاب د سر مشق له مخې تمرین وکړي.

دريم لوست

(۳) مخ

لومړی درسي ساعت

(د تدریس وخت دوه درسي ساعتونه)

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **د (الف او مد (آ) توري** | |
| **عمومي موخې** | په کرکي قلم د (آ) توري له لیکلو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| **د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | له زده کوونکو هیله کېږي چې د دې لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي<br>• زده کوونکي په کرکي قلم د (آ) توري تمرین وپوهيږي.<br>• زده کوونکي به په کرکي قلم د (آ) توري مشق وکړای شي.<br>• زده کوونکي به د کرکي په قلم د (آ) توري له مشق او تمرین سره مینه پیدا کړي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه. | |
| **د تدریس اړین توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کرکي قلم، تباشیر، مشواني او خط کش. | |
| **د ارزونو طریقه** | په عملي او مشاهدوي توګه. | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | سلام اچول،پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې لیدنه، له تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره يې اړيکې. | وخت ۵دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځ ته کولو پوښتنه:**<br>-تاسو کله په کرکي قلم د (آ) توری تمرین کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| -له زده کوونکو د لوست په اړوند پوښتنې وکړئ،<br>- لوست تشریح او توضیح کړئ،<br>-زده کوونکو ته په کرکي قلم د مشق او تمرین لارښوونه وکړئ،<br>-د لوست فعالیتونه ترسره کړئ،<br>- د زده کوونکو ارزونه وکړئ،<br>-زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړئ. | ۳۵<br>دقیقه |

**ارزونه**: د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهیدلي دي او یانه، د څو پوښتنو په کولو هغوی وارزوئ.

**کورنۍ دنده**: زده کوونکي دې د (آ) توری په کرکي قلم په کتابچو کې مشق او تمرین کړي.

## اضافي معلومات

•**سر مشق**: هغه لیک دی چې ښوونکی یې لیکي او زده کوونکي د هغه له مخې مشق کوي.

د حسن خط د مضمون په کتابونو کې سر مشق هغه بېلګو ته وایي چې د زده کوونکو د تمرین لپاره په پام کې نیول شوي دي.

د تورو د لیکلو حرکتونه پر غشو ښودل شوي دي چې هر حرکت یوه شمېره لري.

**د بېلګې په توګه**: د ( ۱ ) شمېره د توري د لیکلو پیل او د نورو شمېرو دوام او وروستۍ شمېره د توري پای ده.

د یادولو وړ ده چې د بېلابېلو تورو حرکتونه په ځینو کې کم او په ځینو کې زیات وي، ځینې توري پر یوه حرکت اوځینې نور یې له ( څلورو ) حرکتونو څخه په زیاتو لیکل کېږي.

دا قاعده تر وروستي لوست پورې په پام کې نیول شوې ده. زده کوونکو ته د ټولګي په توره تخته او یا د حسن خط په کتابچو کې د قلم حرکتونه ور وښیاست چې زده کوونکي ستاسې د لاس حرکت وویني او سمه زده کړه ترسره شي.

د زده کوونکو مشقونه سم او اصلاح کړئ او دوی ښایسته او ښکلو لیکلوته وهڅوئ.

همدارنګه هره ورځ د زده کوونکو کورنۍ دنده له نوي لوست څخه دمخه وګورئ، د نوي لوست اړیکه له تیر لوست سره ټینګه کړئ.